عطا محمد وردک

# کلي ته به کله ځو



خورونکي [illegible] عرب

عطف ، محمد

قلمی نوم: وردک

دپلار نوم: ولي محمد معروف په راجا

دنیکه نوم: ملك رحمت گل

قوم: وردک

دزیږیدو نېټه: ۳/۵/۱۹۷۰

تعلیم: بی اے پولټیکل سائنس

کلے: دربار چکدره

تحصیل: ادینزئی

ضلع: دیر

صوبه : پښتونخوا

کاروبار: مدیرالفروع شرکه البعیز الریاض(سعودی)



دشاعر نور چاپ او ناچا پ کتابونه

۱:- کلی ته به کله ځو ( همدا اثر)

پښتانه په سعودی عرب کښې نثر ، چاپ.ته تیار

څړیکې "لنډې قیصې" نا چاپ

زړه سترې ساندې: مقالې اومضمونونه ناچاپ

پنګه: تالیف، شاعري، ناچاپ

خوارږه یادونه افسانې "لنډې قیصې" ناچاپ

زیرے ناول

موجوده درك: شركه البصيرالتجاريه المحدوده رياض سعودي عرب
تلفيون: استوګنه: 01/22766817
دفتر: 01/22926010
فاكس: 01/22956016
موبائل: 0503486702
اى ميل: adress wardag khail@ hotmali.com

دكتاب دملاويدو دركونه: پښتو ادبي غورځنګ رياض سعودي عرب
پاينده محمداستاذ: دربار چکدره تحصيل ادينزئى ضلع دير پښتونخوا.
خير محمدوردګ: : دربار چکدره تحصيل ادينزئى ضلع دير پښتونخوا..
پاكستان يوتهـ ارګنائزيشن تحصيل ادينزئى ضلع دير پښتونخوا
يونيورستيي : بك ايجنسى خيبر بازار پيښور.
اردو سائنس بورډ: سركارنو مركز خيبر بازار پيښور
دير ادبي ملګرى چکدره بام بټ خيله

# ډالۍ

۱:- دهغو پلارانو او میاندو په نوم چې دخپلو مسافرو بچو ددیدن د پاره همیشه سترګې په لار وی.

۲:- دهغو خویندو په نوم چې همیشه ئې لاسونه دخپلو مسافرو رونړو دکامیابۍ او کامرانۍ دپاره پورته اسمان پلو نیولی وی.

۳:- د هغو تور سرو او چنغلو په نوم چې خپلو مسافرو خاوندانو ته د وطن د راتلو لپاره لحظه شماری.

۴:- د هغو ماشومانو په نوم چې په شته پلارانو کښې د پلار دمینې اوتربیت نه بغیر لوئیږی.

۵:- دهغو مسافرو په نوم چې دمعاشی نا هماوریو له کبله په دې سیزلو هوا ګانو په دې شکلن او کانیز پردی وطن کښې په زړه سترې او زړه چاودې مسافرۍ مجبور کړے شویدے.

۶:- ددې شعر د شاعر په نوم چې:

خار دې امریکه دروس نه روس دې خار دچینه شی
غوارمه چې تولـه دنیا مینـه مینـه شی

۷:- د قابل قدر او محترم بزرګ عبدالستار ایدهی په نوم چې د دردونو تکور دے.

۸:- د ستر پښتون "باچاخان" په نوم چې دخپل ژوند قیمتی حصه ۳۳ کالـه ئې دپښتون قام دروڼ سباوڼ په خاطر د زندان د تورو تمبو تر شاه تیره کړه.

۹:- دخپل ګران استاذ او ملګری الله دادخان ایدوکیب په نوم چې ماترینه ډیر څه زده کړیدی.

۱۰:- د خپل خوږ ملګری ایاز په نوم چې ثانی نه لری.

۱۱:- په اخره کښې دخپلې هغې درخو په نوم چې زه ئې ادم نه شوم.

# ما وردګ څنګه وپېژندو

دشلمې صدۍ نولس سوه اتیایم کال و دورځ اوتاریخ معلومات مې ذهن سترې والے او سستي نه قبلوي. خو دومره معلومات ضرور لرم چې دسعودي عرب تړېدلې غرمه وه چې يو ملګرې راته په ټيلفون ووېل چې ځائې کښېږ به ئې؟ که چرته بهر ته به ځې څه شيبه پس تلې وغږېده چې ور بېرته کولو لـه راغلم څه ګورم چې ملګرې سره چې کوم ملګرې راغلی دی پينټ شرټ ئې اچولے دے ټائي ئې تړلې ده.
تندرست او پلهوان دے. سور سپين سره سره بريت، واړه واړه ويښته ما چې وليدوز په والله چې اول اول کښې مې اونه پېژندو. په زړه کښې حيران شوم چې که پښتو کښې ورته پخير راغلے وايم او پښتون نه وي ګورم ورته چې سړے دشکل نه سوريا والا او ترکي والا غوندې ښکارې السلام عليکم مې ورته ووې او لاس مې ورسره ميلاو کړو چې دننه راتلو ما مې ملګرې ته ووېل چې راځئ چې ځو ملګرې مې ملګرې ته دراتلو دپاره "راځئ حاجي صيب" ټکے استعمال کړو چې دننه کښيناستو نوبه نااشنايي. کښې مې ورته ووېل چې څنګه حال دے وروره!
ده ووېل چې ښه يو ستاسو دعاګانې دي ما ووېل چې خفه نشئ بهر مې درته ځکه زيات څه ونه ويل چې و مې نه پېژندې ويل ئې الله دې ښاد لره.ډېره ډېره مهرباني.
دغه شان دا محفل په دې ځای په ناشنايي. کښې ډېر مخ په وړاندې لاړ او مونږ دغه رنګ ګپ شپ ولګولو چې غرمه موسره تيره کړه او چې مازيګر شو زه په څه کار پسې بازار ته لاړم. او چې واپس راغلم

په دوکان راته یو کاغذ ملاو شو چې دپاسه پرې د عطاء محمد مضمون لیکلے شوے و او ورسره پرې دوطن پته دربار چکدره تحصیل ادیزئ لیکلې شوی وه دغه رنګ پرې موجوده پته هم سره دټیلفون د دوه نمبرو او دمنیجر نمبر لیك و. زړه کښې حیران شوم چې سړے درنګ ډنګ نه شاعر نه ښکاریدو او داتکړه دکاغذ څه عجیبه ګواهي ورکوی بیا مې معلومات واخستل پته راولګیده چې دلته الخرج کښې ئې دچا سره Business Apointment پسته به دوباره راځی بیا چې ښاغلے مغموم راستون شو نو بیا ورته لړ زیات په احترام ودریدم اوورته مې ووېل چې ګرانه وروره! اول دې راسره ادبی پیژندګلو نه وه شوې اوس به سره کښینو او ادبی پیژندګلو به کوو لنډه دا چې ښاغلی وردګ صیب سره مې رومبی ملاقات داسې ربط پیداکړ چې دیوبل نه جدا کیدل لرې وتل او یا دیو بل نه ډډه کول مو ناممکن وګڼل. وخت تیریدو یو بل نه به مو غزلې او نظمونه اوریدل ګپې شپې به مو ویشتې پردی. سپکه اوخپله درنه به موهر وخت په شونډو تیریده.

کله کله به مو پکښې پټه ګټه هم شروع کړه مغموم صیب به په پټه ګُته کښې ټګی هم کوله او چې چا به ورله غلا ونیوله هغه وخت به داسې سور غونډې شو دا ټوقې ټقالې دغه رنګ جاری وې مغموم صیب که به په هفته کښې دوه ځله یا یو ځل خامخا ریاض ته تر د الخرج رامنډه کوله ځینو ملګرو به راپسې خندل او وئیل به ئې هلکو، چرته دنظره نه شی. ډیر مه خوږیږئ چرته ورانه مو رانشی دملګرو دغه خبره څه وخت مو رښتیا هم شوه ورانه مو پکښې هم

راغلـه خو لکه چې مونږ دواړو تـه یو بل هیرولرګران وؤ بیا مو سره جوړه شوه.
او اوس زمونږ یارانـه یو ځل بیا دشیطان غوږونه دې کاڼه وی دالله په فضل سره ښـه په جوړن او ښه په مزه کیږي ده. دژوند ورځې شپې ښـه په چرت کیږي تیریږي. او دوخت څرخ ښه په تیزۍ په خپل فکری جمود کیږي تاویږی هغه ورځ هم دهیرولو نـه ده چې ښاغلی مغموم صیب د دمام ملګرو ښاغلی شاه اپریدی صیب او ښاغلی محمد امین امیـن صـیب تـه شریکه بلنه ورکړه او تر دو الخرج دراتلو په زخمت مجبوره کړل او چې کلـه راغلـه او مونږ ورسره مشغولیدو دغه وخت ماته ښاغلی مغموم صیب غلې غوندې اشاره وکړه او زه چې بهر راغلم راته ئې وخندل وئیل ئې چې قائیل صیب که تولې خبرې ورته وکړې نو مونږ به ورته څه وایو.
الخرج کیږي چې کوم ادبی ملګری دی هغه تول راخبر کړه هنګامی مشـاعره ده مـا ورتـه وویـل صـیبه! داخو به ډیره ګرانه شی پروګرام به څنګه کوو ویـل ئې دخبروضرورت نشته خو تادی کوه روستو ترې دتهنګ تکور پروګرام دے ما ورته وویل چې ښه خبر یم فضل خالق دا دومره انـتظامات چې کړیدی خو هم دتهنګ تکور دپاره کنه خو دمشـاعرې داپروګرام خو پکیږي اوس زیات راغے ویـل ئې ته څه غم کوې امونـه خوره ونې مه شماره. نور کار په ما پریږده څه چې درته وایم هغه وکړه او بس ناساپی پروګرام جوړ شو. دستیج فرائض عطاء محمد مغموم صیب اداکړو او کلـه چې ئې میلمانو شاعرانو تـه کلام اورولـو دپاره بلنه ورکړه نـو میلمنوویل چـې مونږ تـه خو

دمشاعرۍ علم نه وو مونږ خو په جر رابللی شوی یو ځکه خو بغیر دځه تیارۍ نه راغلي یو خو زمونږ مغموم صیب ډیر زورور سړے دے اوس به څه وایو. ضرور چې راغلي یو او چې ما عطاء محمد مغموم صیب ته وکتل مسکے مسکے کیدو. ما په زندګۍ کښې مشاعرې ډیرې لیدلی دی خوددې مزه څه جدا وه څومره چې ترې زه نا امیده وم دومره ئې متاثره کړم مشاعره په خیر خیریت سره اهتمام ته ورسیده او بیا دغه رنګ دټنګ ټکور محفل ولګیدو. ښاغلی عبدالله صادق صیب دمحفل خوند څه جدا مقام ته وخیژوو او چې چریانګ شونو هلکانو منت زاري شروع کړه چې قائیله ورورہ په خدای به شی او په تا به شي مونږ بنګړه (اتڼ) اچول غواړو ما ورته انکار وکړو چې زه صادق صیب باندې دا خبره نه شم منلے. ځکه چې دا خو راته دصادق صیب په طبعیت صحیح نه ښکاري البته مغموم صیب ئې پرې منلے شی. هغوی چې مغموم ته ویل هغه یودم صادق صیب ته وویل چې یره جی زه بخښنه غواړم دا ملګری داسې تقاضا لري هغه ورته وویل ملګریه!

دا ټول هرڅه مونږ دخپل زړه دټکور دپاره کوو داسې مې زړه منی نه خو چې تاسو ئې سفارش کوئ نو وبه غږووم درته او بیا چې کله هلکانو بنګړه (اتڼ) واچولو هر یو به بل دلاس نه رابښکو. او منت به ئې کوو ورته هم دغه رنګ دا محفل تر سبا پورې جاري وو چې سحر نمر راوختو محفل مو برخاست کړو ټول ملګری اوده شول او چې کله بیا سره راپاڅیدو او دبیګانۍ شپې مشاعرې او ټنګ ټکور په حقله موخبرې شروع کړې ملګرو د یو بله تپوسونه کول چې پروګرام

څنګه وو؟ مغموم صیب وویل چې هیڅ خوند ئې نه و مونږ ټول
حیران شو وې ئې دا ځکه چې ظالمانو یو بل ته منتونه کول او ماته
پکښې چا دتشې خلې ست هم ونکړو او زما دومره اتڼ ته زړه کیدو
چې زه دکالج اوهاسټل هغه زاړه یادونه تازه کړم.
زما ددې دومره اوږدو خبرو مطلب دا و چې خوږ ملګرے ښاغلے
عطاء محمد وردګ صیب په زړه خیرې نه ساتی څنګه چې صفا
سپینه جوڅه رب ورکړیده دغه رنګ ئې زړه هم غنی او صفا
ورکړیدے. چرې داسې خبرې په خاطر نه اخلی چې ګڼې څوك به پسې
بد ووائی هرڅه چې کوی خو خپل ذاتی هر خیال ته د تکمیل جامه
اغوندی په خپل شوق پوره کولو کښې هیڅ قسمه ناغه نه راولی او
کله کله په خپله همداسې وائی چې مړه څه پرې کړې اصلی مطلب
دیادولو دے که په ښه کښې دې څوك یاد نه کړی چې په بده دې
وستائی دا هم پوره ده خو چې لکه د بوډۍ دزوی نه سیوری ئې او نه
د نمر. هغه وخت مغموم صیب متحرك وو اوس د وردګ د زړه زور
راته هغه نه ښکاری.
ځکه چې وزن ئې دې عمر کښې پخوانی وزیراعظم جمالی نه اړولے
دے څه کارونه ئې دهیرولو نه دی کله چې ئې دعبدالقادر صیاد
صیب په مرسته پښتو کاروان ادبی ټولنه ریاض جوړه کړې ده او هم
زما سره ئې په وړومبی ملاقات کښې ددغې ټولنې دنائب صدر په
نوم پیژندګلو کړې ده .
دیر ادبی ملګری راسره ښاغلی وردګ صیب اشنا کړل نومونه دټولو
اخستل خوګرانه ده خو دښاغلی فضل تواب ترابی اوښاغلی

عبدالقادر صیاد صیب نومونه دهیرولو نه دی عطاء محمد وردګ
هم دهغه وخت نه په ادبی هلو ځلو کښې بوخت دے اوهم دغسې
روانه ده لائې دادبی ژوند قافله په خپل ترون او تګ مجبوره کړیده
او زما په خیال وردګ صیب چې په پښتوادبی غورځنګ کښې کوم
کار وکړو دغه هومره به لابل ملګری کړی نه وی. کیدےشی ځنې
ملګری زما سره دا اتفاق ونه لری خو بیا هم په حقیقت کښې سترګې
پټول راته ښه نه ښکاری. وردګ صیب په تنظیم جوړولو او په
پروګرامونو نمانځلو کښې چې کوم هنر اوتجربه لری زما په خیال
هغه که ئې په شاعرۍ کښې راشی نوواقعی چې ددستار ولونه به ئې
دشمارلو وی هسې خو دپښتو ادبی غورځنګ ملګری ټول دصفت
وړ دی خوپکښې ښاغلے نعیم راهی صیب او ښاغلے عبدالله صادق
صیب او ښاغلے علی حیدر کوثر صیب اوښاغلے صابر حجازی صیب
او په تیره تیره ښاغلے غلام حیدرحیدر صیب دا هاغه که دی چې په
طلب به ئې مطلوب پیدانکړی.
خو یو فرد واحد داسې هم لری چې هغه ددغې تنظیم په ورانولو
حپل تیل اوباتۍ هسې وسوزول.
او دا هم زما په خیال دوږک او دهغه ددغه ملګرو پوهه ده چې هغه
ئې په خپله بدنیتۍ کښې کامیاب نکړو. عطاء محمد وردګ ددې
نه مخکښې دعوامی نیشنل پارټۍ ځانګه سعودی عربستان د مشر
سکتر فرایض اداکړیدی.

د پښتو ادبي سنګر په نوم چې کوم تنظیم دے هغې سره
ئې پوره پوره مرسته او ملګرتیا کړې ده. د اردو مشاعرو
کښې ئې هم نظمونه اوروِلي دي او د اردو د صحافت
سره ئې هم رابطه شته.

بذات خود ئې زه ډیر د نزدې نه پیژنم. ځنې ذاتي خبرې
ئې زما خوښې نه دي خو دا هم راته انصاف نه ښکاري
چې څه وضاحت ئې وکړم. هسې خو هغه ماله پوره پوره
اختیار راکړے دے چې زما خوبۍ او خامۍ دواړه دې
ولیکلے شي او راته ئې دا هم وئیلي دي چې ګرانه وروره!
زه مُلا نه یم چې هیڅ بې هیڅه به په خپل صفت
خوشحالیږم او د سپینو جامو بد ویونکي ته به د اتشین
دوزخ فتوی ورکوم خو دومره به ووایم چې ښاغلے وردګ
یو جذباتي انسان هم دے او جذبات پرې غالب دي.

کله کله داسې خوئي وکړي چې نابلده خلق به ئې یو غټ
متکبره او لوئي نظرے وګڼي او کله به په دومره
خاکسارۍ کښې راشي چې وار به درلره خطا کړي. کله
کله به درباندې هیڅ بې هیڅه خپله خبره په زور مني او
چې د چا سره په څه خبره اړې راواخلي نو زر به وائي
راځه کنه چې قران او چاړه ترمینځه کیدو. اوس به سره
فیصله خلاصه کړو.

مړه خو د پښتو دا متل پرې چرې هم پوره نه خیژي چې نه
دومره خوږ شه چې دې تیر کړم او نه دومره تریخ شه چې
دې هیر کړم.

اؤ يوۀ عادت ئې دا هم دے چې اکثر خبرې کوی نو وائی
يره څو "پارې" مې درتهووې لکه چې مونږه "پيرې" وايو
څو پارې مې پوهه کړې . يا ډيرې پارې راغلم خو ته نه
وې. اؤ يوۀ بل زوړ عادت ئې راپه ياد شو. اکثر چې ورسره
مَشغوليږې او په خبرو کښې لږه وقفه راشي نو دے به
درنه پخپل منفرد انداز کښې پوښتنه وکړی " نور کلی
کښې خير وۀ؟"
يوۀ ځل ترې ما هم دغه پوښتنه وکړه چې ښه نور کلی
کښې خير وۀ. هغۀ راته ووئيل: هوۀ پلار به مې دې ليدو.
جومات ته به مانځۀ له تلو راتلو. هسې مطلب مې دادے
چې د ښاغلی وردګ صيب په زړه د کلی مينه د اول نه
غالبه وه ځکه خو ئې د خپل کتاب نوم د کلی د توری نه
ونۀ شوکولو او "کلی ته به کله ځو" نوم ئې پرې کيښودو.
د کلی ارمان خو د هر مسافر وی خو لکه د وردګ صيب
ارمان چې د ټولو نه زيات وی او لکه چې مسافری د
ټولو نه درنه او بوج داره صرف په ښاغلی وردګ وی.
اوس به راشم د کتاب په لوری. زما په ذاتی خيال لاخو د
وردګ شاعری کتاب ته ليواله نۀ وه خو لکه چې دے ډير
زيات په تادی ليدے شی او لکه چې څنګه کلی ته ليواله
دے دغه رنګ د خپل کتاب نوم اوريدو ته هم
که چرې د صبر ګلاس ئې نوش کړے وے نو دا به د
ښاغلی وردګ دپاره ډير مفيد وے خو بد ورته هم ځکه نه
وايم چې د وردګ صيب تلوار ډير دے او هغه په دې چې

اول ئې منده ترړه وهله چې د مختلفو شاعرانو د شعرونو
مجموعه شائع کوم او ددې لپاره ئې د ډيرو ملګرو
ليکونه وصول کړی هم وو. شايد چې اوس هم ورسره
محفوظ وی. هم په دې سلسله کښې ورته ډيرو ملګرو
معتبرې رايې هم راستولې وې چې هغوئ کښې د بناغلی
شمس العرب تبسم ليك لکه چې څنګه زما نه هيريږی
داسې به د ملګری وردګ هم نه وی هير. او زما خو چې
ورسره کوم تعلق او دوستی ده هغه د وردګ نه نزدې ده
خو بنياد ئې هم دغه ليك دے کوم چې وردګ صيب
ترلاسه کړے وو. او چې بيا کله زه بحرين ته لاړم او ورسره
مې ليده کاته وشول نو ډير زيات رانږدې بنه ولګيدو او
ډير زيات ترې متاثر شوم. او هغه او د هغه ملګرو ډير
زيات درناوے راکړو. هغوئ رانه د وردګ صيب پحقله
تپوس وکړو. وئيل چې مغموم صيب په څنګه حال کښې
وی؟ ما وئيل چې جی ډير بنه دے خو اوس ئې تخلص
وردګ دے. مغموم ئې بدل کړے دے. هغوئ راته ووې
چې وردګ ته به زما د خلې دا خبره ورسوې چې په وردګ
کښې هغه څه نشته کوم چې په مغموم کښې دی. ماچې
مغموم له جواب راوړو نو راته وې وئيل قائل صيب! تاسو
ته خو پته نشته کنه چې زه د خيالاتو نه منفرد انسان يم او
تخلص مې انفراديت نه لری نو په دې وجه ئې بدلوم چې
نه خو زه ډاکټر يارمحمد مغموم يم او نه عبدالله جان
مغموم او نه د هغوئ د تخلص وزن کمول غواړم. او

کيدے شي چې خلق دا وګڼي چې د ا تخلص ئې ډاکټر صيب يا عبدالله جان صيب پسې اېښودے دے او بله راسره دا وېره هم ده چې که زه چرې ښه غزل وليکم نو لوستونکي به وائي چې دا غزل هم ددغو نومورو کيدے شي او که چرې هغوئ کمزورے غزل وليکي نو وائي به چې دا د عطاء محمد مغموم دے

زه چې داسې دم په دم خبره اورېدوم نو دا هم راته ښاغلي وردګ وئيلي دي چې څومره درانه او اوږده ليکل کيدے شي هومره اوږده به راباندې ليکي او راته ئې ووئيل چې زياته توجو به پېژندګلو له ورکړې ځکه چې په دې شاعرۍ به مې نور ملګري ليکل کوي چې ادبي مقام ډير اوچت لري

ګڼې نو زه به قائل يم خو په دې دور کښې د ناول قائل نا ځکه چې د افسانې نه افسانچه زيږيدلې ده او ځنې خلق ورته لنډه افسانه يا وړه افسانه هم وائي او چې په شاعرۍ کښې هائيکو هم د ادب برخه شوه نو بيا خو خبره خلاصه ده او نه د چا سره دومره وخت شته چې دې مشيني دور کښې سفرنامې يا ناول ليکلو او لوستلو ته جوړوي. اوس به بيا وردګ صيب ته راورګرځم. وردګ په خپله دا خبره تسليموي چې زه په شاعرۍ کښې کمزورے يم. خو ګران وردګ که خپل کوشش داسې جاري وساتي نو انشاء الله په مستقبل کښې ترې د ډير څه توقع کيدے شي. ګران وردګ د ملګرو په ځينو خبرو ډير زيات خوښ

دے ولې چې سپين زړے دے او د ارتې سينې خاوند دے او دومره خاطرداره دے چې اکثر ورته ملګرى وائى: يره ته په مشاعره څۀ کوې. تا ته خو ګرانه نۀ ده کۀ نور څۀ نۀ وى هغه ماشومانو والا به پکښې ووائې.

يوه ورځ ورته يو ملګرى ووې وردګ صيب! تاسو چې کورته ټيليفون کړے وُ او وراندار درنه پوښتنه وکړه چې داسې کاواك ولې ئې نو تاسو ورته ووې چې څۀ وکړم چې دا ظالمان روزانه مشاعرې جوړوى نو څۀ پکښې ووايم. دغه يو دوه درې غزلې دى هغه خو مې ټو خله ووې. نن به څۀ کوم؟ نو وراندارې درته ووې چې په دې کښې د سوچ څۀ دى هغه ماشومانو والا پکښې ووايه کنه.ټوك خو دې څۀ خورى نۀ. وردګ صيب داسې په ختې ختې وخندل چې کم اميد دے کۀ دا رنګه ئې چرې خندلى وى. او هغه بله ورځ مې ورته خندل. اوس هغه غزل وائې کنه؟ کوم يو؟ هغه ماشومانو والا. بيا ئې وخندل. وئيل ئې دا ئې لاڅۀ کړې هغه بله ورځ مې کورته ټيليفون کړے وُ. کشر ورور ډاکټر سهيل راته وې چې دې خپلې لور ته خو دې ټيليفون کوه کنه. ما ورته وے څه راکړه چې د حميرا سره خبرې وکړم. وئيل ئې خبرې ورسره وکړه خو هغه ماشومانو والا ورته ونۀ وائې.

د غزل سره ئې څۀ خاص انصاف نۀ دے کړے يا ئې دا خبره په وس کښې نۀ ده او يائې د غزل د روايتونو نه بغاوت کړے دے.

دا ماشــومان چــې خــرخوی ګلونــه
ګلونــه به څــنګه خــرخوی ګلونــه

په دې مطلع کښې ښاغلی وردګ خرخوی د قافیې په ډول استعمال کړے دے او هم په دغه یوه مطلع کښې ئې دوه ځله استعمال کړے دے. پکار خو داسې نه وه خو دا خبره ضروری هم نهٔ ګنړم ځکه چې یوځل راته یؤ ملګری وې چې کهٔ غزل درنه ګډوډ شو نو نوم ورله د نظم ورکړه بیا به دې څوک نهٔ ګرموی. غزل نما نظم به ورته وائی اؤ کهٔ چرې غزل نما نظم ورته ونهٔ وائی نو معری خو به ورته ضرور ووائی او کهٔ چرې داسې هم ونهٔ شی نو ازاد نظم خو چرته تلے نهٔ دے. اوس خو پکښې هغه د چا خبره چې نثری نظم هم زیږیدلے دے او هغه هم د شاعرۍ برخه ګڼلے شی او چې دغې ته ئې وګورو نو بیا خو زمونږ ګران وردګ صیب ته هیڅ ملامته نشته اؤ هغه د چا خبره چې سپین باز دے کهٔ ښهٔ شاعر ئې نهٔ ګڼو نو شاعر نهٔ ګڼل ئې هم جرم دے اؤ لا زلمے دے حوصله ئې ځوانه ده. په مخه روان دے په دې تمامه نهٔ ده. امید لرو چې په مستقبل کښې به شمله په ښکر وتړی. اول د وردګ صیب په شعرونو کښې زما د خوښې یؤ شعر:

مونــږ د خــپل ذات د کــوره اوس هــم لاوتلــی نــه یــو
پــه هــر یــو لــور د جهالــت زمونــږ قیصــې پــرتې دی

اوس به راشو د ښاغلی وردګ هائیکو له

خلق وائی:

د پلار زانګو مې زنګوله

په دې کښې غږ شو چې نيکهٔ دې پيدا شونه

خلقو لانثری نظم او ازاد نظم د شاعری حصه ونهٔ ګڼله او د بره پرې هائيکو راغله او اوس خو ورته ډيرو پوهانو د پښتو په غيږ کښې هرکلے ووې او ځينې ورته په کوزه کښې سمندر وائی. څوك ورته نچوړ او خلاصه وائی. او زه ورته بذات خود د بده مرغه وايم او هغه ځکه چې څوك د دنيا نور خلق به چرته زمونږ د پښتو لنډۍ يا ټپې له پخپله ژبه کښې ځائی ورکړی کنه. دا ميلمستيا ئې د پښتون په برخه ليکلې ده. خدائ تعالی مې دې د تنګ نظرۍ نه وساتی خو که حالات داوی نو سبا به د هندی دوګانې هم زمونږ د پښتو د سوچه ادب برخه وی. ځنګه چې هائيکو جاپان د تيز رفتاره ګاډی پشان د پښتو ادب ته رانـوته او پښتنو ورله وجود د پښتنو د وجود غوندې پراخه کړو. زما په خيال هائيکو په جاپانی ادب کښې لکه د جاپانـيانو د وجـود غوندې کوټلې او چسـته وه چې وړومبۍ مصرعه ئې 5 سيلابه او دويمه ئې 7 او دريمه ئې 5 سيلابه وه. که دغه لوازمات ئې شرط وی نو بيا خو د ملګری وردګ صيب هائيکو ګانو له د هائيکوګانو نوم ورکول ماسيوا د يوې نه مناسب نهٔ دی. او هغه داده:

لا به يوځ کيږو

ده د بابا خبره

ګڼې ورکيږو

او کۀ چرې يوۀ صنف د يوې ژبې نه بلې ژبې ته په اوړيدو خپل اصلي شکل بدلولے شي نو بيا کۀ پښتانۀ دا قسم زبردستي وکړي نو جرم به نۀ وي.

بهرحال زۀ خپل ملګرے بناغلے وردګ د ځان نه هم بهتر ګڼم او هغه په دې چې يو توکل دے پکښې يوه جذبه ده پکښې او دا د کاميابۍ نښې دي. لاس په دعا يم چې الله تعالی دې د وردګ قلم له زور او په ذاتي ژوند کښې هم کاميابي او کامراني ورکړي. اوريدلي مې دي وائي چې د مسافرو دعا قبليږي.

اجازت غواړم د لوئي الله په امان

**پير قائيل بغرزے**

الخرج رياض سعودي عرب

22 جنوري 2004ء

په دې خبره کښې اوس د شک هیڅ گنجایش نۀ دے پاتې شوے چې هائیکو په پښتو شعری ادب کښې ځان د یو ځانګړی صنف په توګه په پښتنو لیکونکیو او لوستونکیو ډیر په درناوی قبول کړے دےاو داسې ئې پرې قبول کړے دے چې اوس جاپانی هائیکو د پښتنو په کور کښې جاپانی نۀ بلکې بیخی پښتنه شوې ده. ددې وجه داده چې په تیره لړه موده کښې هائیکو ته د ډیرو ښو ښو شاعرانو توجو راوګرځیدله او ددغه صنف په اوربل کښې ئې د خپل استعداد. علمیت او تجربو ګلونه وټومبل چې د دغو ګلونو په خوشبویی د پښتو د شعری ادب فضاء نوره هم تر او معطره شوه او اوس چې د خپل خوږ وطن نه لرې زمونږ مسافرو شاعرانو ورونو هم د هائیکو په سرخېله کښې د رول ترسره کولو لپاره خپله سینه ډبولې ده نو دا ددې غمازی کوی چې اوس به که خیر وی هائیکو لکه د پښتو ټپې د پښتنو در در. ور ور او هر ذهن او نظر ته ورسیږی. د مسافر ورور عطاء محمد وردګ دا مجموعه " کلی ته به کله ځو" هم یقیناً چې د پښتنو په سیمه کښې د هائیکو د مقبولیت او قبولیت په حواله یوه ښه اضافه ده. او هیله کیدے شی چې سعودی عرب ته ددې مجموعې د رسیدو سره به دغلته د روزګار په سلسله کښې میشته پښتانۀ شاعران هم د هائیکو

لیکلو او لوستلو ته وهڅیږي. او په دې لړ کښې به خپل مزید غوره تخلیقات او افکار هم مخې ته راوړي.
د ښاغلي عطاء محمد وردګ ددې کتاب د چاپ کولو په شا چې د پښتو د خوړولو او هائیکو ته د ودې ورکولو کومه جذبه پرته ده هغه یقیناً چې د ستائیلو او نازولو ده ځکه چې ښاغلے شاعر د خپل وطن او خپلو عزیزانو او کورنۍ نه په زرګونو میله لرې فقط ددې دپاره د ژوند شپې ورځې تیروي چې د خپل مستقبل د محفوظ کولو دپاره څو پیسې ترلاسه کړي. ولې داسې لیونۍ جذبې ته به بنده د څۀ نوم ورکوي چې په محنت مزدورۍ ګټل کیدونکو دغو پیسو کښې د پښتو هم برابره برخه کوي. او دغلته د نورو ادبي سرګرمیو ترڅنګ د پښتو کتابونو چاپ کولو دروند بار ته ئې هم اوږه ورکړې ده. پاتې شوه ددې کتاب د معیار خبره نو دا د ښاغلي شاعر وړومبے کتاب دے چې ځینې پکښې ډیر د ښۀ معیار تخلیقات شامل دي او بنده پرې شاعر ته افرین وئیلے شي. او کومې خامۍ اؤ فنی کمزورۍ چې پکښې ستاسو له نظره تیریږي نو د هغې پحقله به ددې نه سیوا څۀ وضاحت وشي چې په وړومبۍ ځل هیڅ یو بوټے دومره زیاته میوه نۀ کوي چې د هر چا د خُلې خوند سم کړے شي. خو چې څومره وخت تیریږي دومره د بوټي میوه سیوا کیږي او خوږیږي. او انشاءالله چې د ښاغلي عطاء محمد شاعرانه ونه چې راتلونکې کښې کوم ثمر نیسي هغه به ددې نه

زيات خوږ او شيرين وي. خداۓ دې همت ورکړي چې د
هائيکو ليکلو دې سلسلې ته دوام ورکړي او په راتلونکې
کښې د ښۀ معيار بهترينې هائيکو خپل قوم ته د پښتو د
خدمت په سپيڅلې جذبه وړاندې کړي.

په درناوي

**ناهيد سحر**

لسم نومبر 2004ء

د ډېرې مودې راهيسې سمندري پورې مسافرې کوي په رياض سعودي کښې دپښتو ادبي غورځنګ په حواله زمونږ دقافلې ملګرې دے او په تيره تيره زما ذاتي ملګرے هم دے.

وردګ صيب وخت په وخت دپښتو ادبي غرځنګ دکابينې اومجلس عاملې په مختلفومنصبونو پاتې شويدے. شعر هم ليکي اونثر هم په الفاظو کښې درد او خوږ لري. دنوي کول زلمے شاعر دے د دروند وجود اوښکلې ثيقې خاوند دے په پښتو او پښتنومئين او قام پرسته پوهه اوتعليم يافته ځوان دے. دښه خوئ خنده رويه انسان دے چرې مې هم خفه نه دے ليدلے. که هرڅومره دژوند شخړې وربغاړه وي خوپه تندی يې ګونځې نه راځي. هر وخت په خندا خوشحالي ليدے شي وردګ صيب داسې زلمے دے چې خپل غم دچا سره شريکول نه غواړي او خوشحالي دهر چاسره شريکوي. داسې انسانان ما ډېر کم ليدلي دي چې دنورو دپاره ژوند کوي.

زما ددې خبرو مطلب هرګز دا نه دے چې وردګ صيب فرښته ده وردګ صيب زمونږ په شان يوعام انسان دے اودژوند په هر اړخ کښې به څه نا څه کمے او خطاګانې لري خو هغه هم دخپل ذات پورې محدود دے او داسې خطاګانې زه نه شمارم چې دځان نه ترې بل انسان نه زياتيږي. او هسې هم هر يوانسان له پکار دی چې دبل انسان په ذاتي ژوندکښې مداخلت ونه کړي زما په خيال خودا حق هيچا ته هم نه دے حاصل دپښتو يو متل دے چې يوه ګوته بل ته نيسې نو څلور ځانته راځي. هر انسان دمعاشرتي ژوند په څه نه څه

اړخ کښې ارو مرو څه نه څه کموت یا نیمګړتیاوې لري خو هغه
خطاګانې چې بې ضرره وي نو داسې انسان ته ښه انسان وئیلے شي.
دخپل فکر او نظر په رڼا کښې عطاء محمد وردګ صیب ته په
دعوې سره دښو اخلاق، ښه کردار یوښه انسان وایم.
دپراخې سینې لوئې زړه، ښکلې ټیقې مینه ناك او خواخوږے انسان
دے دعا کووم چې الله پاك دې ورله ډیر ژوند عزتونه اوقلم دومره
تیزې ورکړي چې دپښتو ادب دناوې په وربل کښې وخت په وخت
دادب ګلان ښنګاروي.

امین ثم امین
په درناوی

نعیم راهی مخکینے صدر
پښتو ادبی غورځنګ ریاض

# عطاء محمد وردګ زما په نظر کښې

دپښتو ژبې د ادبي خدمت په حقله ښیرازه او ابا ده دملاکنډ په سپینه خواره د چکدرې په دربار کلی کښې دښاغلی ولی محمد معروف راجاد میٔ دمیاشتې په دریمه نیټه په کال ۱۹۷۰ کښې د عطاء محمد سترګې پرانستې دده تعلق د پښتنو د درنې کورنۍ وردګو سره دے. بنیادی تعلیم ئې خپل کلی چکدره دربار کښې او څوارلسم جماعت پولټیکل سائنس ئې دډګری کالج تهانړې نه اوکړو نن صبا د روزګار په لړ کښې په ریاض سعودی کښې په شرکه البعیز کښې دبرانچ منیجر په حیث ورځ شپې سبا کوی.

دتاب نوم ئې عجیبه غونډې دتاثر پیداکړے دې سره ماته یوه واقعه یادیږی زمونږ دیو ملګری یونیازبین ماشوم وو. هسې هم د بعضې خلقو عادت وی چې په شفقت کښې دخپل اولاد اصلاح کول ورته سزا ښکاری زما دغه ملګرےهم ددغه سوچ خاوند وُ ( دهغې نتیجه داشی چې ماشوم خودسره او بدتمیزه شی)

کله چې به دهغه میلمانه راغلل نو دغه ماشوم به راغلواودمیلمنو مخې ته به ئې بیسکټ وغیره خوړل شروع کړل مورئې په دې خبره ډیره غصه شوه ولې دخاوند وړاندې ئې وس نه رسیدو. یوه ورځ میلمانه راغلل مور ئې په څه چل دغه ماشوم په کوټه کښې بند کړو.

چې ښه ساعت تیر شو نو ماشوم مور ته وایه یا بې بې!

اوس خو به میلمنو چائی څښلی وی‌ما دکوټې نه بهر کړه کنه دښاغلی وردګ دکتاب نوم هم څه دغسې دے. چې کلی ته به کله خوا‌هم دغه احساس ئې وړاندې داسې ترجمانی کوی.

داماشـــومان چــې خــــرڅوی ګلونـــه
ګلونـــه! څــــنګه خـــرڅوی ګلونـــه؟

دردمند احساس ئې با حسه اجتماعی ضمیر ډیر ښه طنز کوی دپښتنې غیرت او ننګ څه داسې ترجمانی کوی چې ذهنی پسماندګی ترې هم ښکاری ولې دا د پښتنو عظیم روایات دےاو ددې پاسداری پښتانه دایمان برخه ګڼی.

بچی مې خیر دے که تعلیم نه کوی
دا کلاشـــنکوف بـــه خامخــا ګـــرځوم
یمـــه پښـــتون د پلاربـــدل بـــه اخلـــم

وردګ صیب په خپله شاعری کښې ددومره معیار غندنه څه په دې ډول کوی.

نـــه مـــنم زه دبـــې عملـــه علـــم
نـــه دنـــیا دارزه مـــتقی مـــنمه
د ریاکـــار نـــه زه لوفـــر خوښـــوم

مسافری ورلـه ښه زړه سترے کړیدے ځکه بل ته په دارنګ ګویا دے.

ویــزې لـــپاره دې پټـــې ګانـــه کـــړه
دخـــپل وطـــن نـــه سـعودی تـــه راغلـــې
تاتـــه جـــوړ هـــم دچـــا خیرې قـــبول شـــوې

دميني جبه بې قيمته خزانه ده ولې زر دار هر څه دروپو په تله تلي دامنظر وردګ صيب داسې ښکاره کوي.

زه کلــه کلــه پــه دې ســوچ کومــه
ځومــره کــم عقلــه دی لاهغــه خلــق
چــې پــه پيســو د خلقــو زړونــه اخلــی

دماديت پرستی، او دمقدسو رشتو بې طمعه جذبو په حقله څه داسې وائی.

روږ دے دســلوپلار د زرو نـــوټ دے
نـــورې رشــتې ټــول پچاســی وګنــه
جنــت فقــط دمــور د پښــو لانــدې دے

د وردګ صيب په شاعری کښې بارکيو نه قطع نظر کوم د قافيه، دريف، رقيب، وزن وتشبيهات. استعاره اوتلميحات سره د زور ازمائی نه بچ کولو دپاره ښاغلے وردګ صيب په نوی صنف هائيکوډير سم راځی. او خپل ماضی ضمير پکښې په ښه شان وائی.
متل او محاوره ډير په درست تړلی انداز کښې استعمالوی درمندر احساس، لړزيدلې جذبې، بې قراره فکر او اميد شال په لاس دوردګ صيب دشاعری اساس دے.
نوره فيصله په لوستونکو چې دده دشاعری په حقله څه فيصله کوی

په درناوی
خالد يوسفزے
رياض سعودی عرب ۲۰ جنوری ۲۰۰۴ء

# دقام په غم غمژن

که زه دا دعوه وکړم چې ښاغلے عطاء محمد وردګ په ملګرو کښې زه ډیر د نزدې نه پیژنم نو دا به غلطه څکه نه وی چې دوردګ صیب سره زما رشته صرف دشاعرۍ دحده پورې محدوده نه ده بلکې زه داخبره ډیره په فخر کوم چې وردګ صیب زما یو ډیر ښه ذاتی ملګرے دے او د ډیرې مودې راهیسې دیو بل سره دهجران په دې قیامت خیزه ماحول کښې دخپل زخمی زړه او ژوبل احساس څړیکو دقلارولو په تلاش لکه دسیل نه جدا شوی مرغۍ بې ارامه او بې قراره دخپل منزل او مرام په لټون په دې خاورینو هواګانو او شګلینو بادونو کې دخپل خوږ هیواد نه لرې په دې پیکه پیکه ماحول کې په ژوبل زخمونو دمرهم او خپل غم درد دشر کولو کوشش کوو.

عطاء محمد وردګ صیب زمونږ په ملګرو کې دخپل روشنفکره ذهن او رنګین خیالاتو په وجه څانله یو څانګړے مقام لرې، کله چې هم مِلاو شي نوکه ماحول هرڅومره درونـد او پیکه ولې نه وی خو دهغه په خوندناکو خبرو مینه ناك انداز او برجسته جملو او هر چا سره په روڼ تندی دمِلاویدو سره ماحول يك دم رنګین او روښانه شی اګر که پخپله ئې دهجران په لمبو سوو شوندهوهمیشه پاړ ولاړوی خو کوشش ئې داوی چې پخپله مسکاء او ډق ډق خندا دغه پاړ د نورو مسافرو ملګرو نه پټ وساتی.

ځکه چې دهغه اکثر داکوشش وی چې دملګرو درد وغم دهغوی سره شریك کړي او خپل درد او غم پټ وساتی. مثال ئې د شمعې دے پخپله سوزی خو تر ډیره حده پورې تیارې رڼا کوی. یا دهغې میوه دارې ونې چې دکمرو په بدل کې میوه ورکوی.ټول ملګری دا ټپه دملاکنډ دسرنه په جار وائی.

چې دبې غمی چل دې خلق د عطاء محمد وردګ صیب نه زده کړی.

دا خبره که پخپل ځائې سل په سله ټیك ده نو دا هم یو حقیقت دے ( او نن زه ددې حقیقت نه پرده پورته کووم) کیدے شی چې عطاء محمد وردګ صیب پرې تندے کونځې کړی خوخیر پریږده ئې چې دملګرو دا خوش فهمی لرې شی عطاء محمد وردګ صیب هر څومره که پخپله په خپلو ملګروکښې خاندی او خوشالیږی او ملګری خندوی او خوشحالوی ئې خو ما یو ځل نه بلکې څو څو ځله ځانله په نری نری ژړا او یوځل نیم مې ښه په چغو چغو هم لیدلے دے او چې کله مې ورله هم دا غلا لیدلے ده اوتپوس مې ترې کړیدے چې وردګ او اوښکې: نه منم.

نو ډیر زرئې د اوښکو ډکې سرې سترګې وچې کړې. او په خندا شو او وې ویل چې لیونے شوے که خندل مې خو زما په ډیر اسرار راته لاس په تندی ډیر په عاجزی کله کله په حکیمانه انداز کې څه دارنګ وویل چې صیاد صیب Please keep with you becouse its top secret!

که د عطاء محمد وردګ صیب دشاعری جاج اخلم او بحث پرې کومه نو بیا خبره اوږدیږی دغه پر مغز کار په نورو ملګرو شاعرانو

پرېږدم. زه کوشش کووم چې په لنډو ټکو کښې دوردګ صيب د شخصيت جائزه واخلم وردګ صيب يوښه زلمے، يو ميلمه دوست پښتون يو خودداره انسان يو وطن او قام پرست شاعر دے ددې سره سره څنګه چې ورله الله تعالى سور سپين رنګ ورکړيدے هغه شان ورله الله تعالى يوه ښه مضبوطه اودرنه جوسه هم عنايت کړيده.

دمحفل رونق دزړونو بادشاه او دالفاظو جادوګر دے او خبره ښه په سياق اوسباق اوتاريخ او جغرافيه سره ښه په دليل کوى. کله کله خو پخپله يوه ناجائزه او بې بنياده نظريه او خبره دومره په دليل سره رښا واچوى چې دسړى پرې دجائزې خبرې ګومان وشى. په خبره کښې ئې ژوروالے هم شته او رنګ هم: که څومره Tough Topic ولې نه وى خو دومره په اسانه اوعام فهمه انداز کښې ئې ووائى چې عقل ورته حيران شى که په دغه موضوع ئې څرته دوه خبرې لوستى اويا اوريدلى وى نو شل پسې د خانه وائى چې دد ليل او منطق په تله ئې پوره پوره تللى وى. سياست، فلسفه، معيشت،نفسيات، څه داسې موضوع ده چې وردګ سره پرې بحث نشته دښو اخلاقو مالك او د ښه کردار څښتن دے. دروزګار په سلسله کښې د ډيرو ډغرو او مشکلاتو وروستو دلته په يو ټريډنګ کمپنى کښې منيجر دے.

چونکه انسان دے فرشته نه ده چې کوتاهى او غلطى به پکښې نه وى.چې دغو کښې دحد نه زيات خوب ناراستى. په عملى ژوند کښې بې نظمى او غصه ئې غټ بد عادتونه دى. او دکاميابى دمخې لوئې لوئې خنډان ئې دى خاص کرد غصې دا عادت ئې دحد نه زيات نا قابل برداشت دے کله کله خو چې په يوه خبره غصه شى

او بیا ددغه خبرې محرك موجود نه وی یا پرې دده وس نه رسی نو بیا د ډیره قهره خپلې شونډې او ګُتې چیچی.
کلی کې خیر وو۔ تا کوم تکی له زور ورکړو۔ ډیر هوښیار ئي: سحر څه خورې ۔ دایو څو جملې ئې تکیه کلام دی چې په مختلفو موقعو ئې بار بار په خپل منفرد انداز دمسکا سره اداکوی داکثر ملګروشاعرانو شاعری څو داسمان سره خبرې کوی څو دعمل په میدان کښې وردګ صیب دا یو خصوصیت لری اګر چې شاعری کمه کوی خوځه چې وایی دهغې عملی ترجمانی هم کوی دباچا خان نه ډیر زیات متاثربکاری اوکه دغنی نه وروستو چا زیات مخالفت دمُلا کړیدے نو هغه هم وردګ صیب دے.
په چغو چغو او په هرځای کښې دمُلا مخالفت ښه په جار کوی او خپله خبره ښه په ډانګ پیلی کوی چې مُلا همیشه همیشه دازل نه تر اوسه پورې دخان،نواب، چوهدری، وډیره ، ارباب، سردار اوظالم ملاء مضبوط کړیدے.
دغه غاصبانو همیشه د مُلا په اوږو توپك ایښے دے او داولس دا چقیدلے خوار غریب مزدور او کسان ئې پرې ایشتې دے. دغریب وینې ئې په شریکه څښلې دی دغریب حق ئې غصب کړیدے دغریب استحصال ئې کړیدے.
عطاء محمد وردګ صیب خپله خبره نه صرف د تاریخ نه ثابتوی بلکې په موجوده معاشره هم داسې مثالونه وړاندې کړیچې زمونږ ورته هډو خیال نه وی.
دیارانو یار دے دمیلمه دوستی. اوملګرتیا ژوندے مثال ئې دادے:

چې دشپې تر درې بجو پورې ورسره ملګرې ناست وی. او په دغه وخت ترې هم ملګری رخصتیږي نو دے ورسره مشت وګریوان وی چې یو لس منتهه ایسار شئ. دپښتو ادبی غورځنګ (سعودی ریاض) په جوړښت او دهغې په سنبالولو کښې ئې ډیر غټ خدمات دی چې دنمر پشان ښکاره دی. دمسافرۍ نه تر پوزې پوزې راغلے دے خو لامزید شل کاله ئې کلی ته نه دتلو څه پروګرام شته او نه اراده. چې رښتیا راباندې وائی نو مونږ خو پرې دلته خوشحاله یو ځکه چې دمحفل ښکلا او رونق دے. او بله دهغه چا خبره وائی چې زما په سرمنګے وی نو دبل په سر دې خم وی دخپل قلم نیلے ئې دنثر سره سره دنظم میدان کې هم په ځغل کړیدے دشاعرۍ په هر صنف ئې طبعه ازمائی کړیده که دنثر دمیدان شاه سوار دے خو په نظم کښې ئې ماته هغه خوارږه نه ښکاری کوم چې دشاعرۍ خاصه ده. البته نن سبا دجاپانی صنف هائیکو نه ډیر متاثره ښکاری چې بې شمیره ئې لیکلی دی. او لګیا دے لیکی ئې دلته په ریاض ادبی حلقو کښې په بابائی هائیکو مشهور دے یو څو هائیکو ګانې ئې ستا سو وړاندې کوم ښه په ژور نظر ئې وګورئ ځکه چې ډیر ژوروالے پکښې دے زما په خیال خو په هره یوه هائیکو کښې ئې ځانله یو پس منظر یو مضمون او ځانله منظر کشی دمعاشرې عکاسی لنډه دا چې په کوزه کښې ئې سمندر دبندولو کوشش کړیدے. دمثال په توګه یو څو

هائیکو ګانې:

ته چې د میاشت دړی دانې اخلې
دادې دیارې شوه د پنځو مونځونو
مُلادا ته به خپل مونځ کله کوې

دهغې یخ واورین سره سپین پښتانه
په دې سیزلی هواګانو کښې به څنګ وخت تیر کړی
په دې وطن خو د تندې نه خرارې سوزی

تاته به هر څه ښکارم هیڅ نه یمه
که دې زما دژوند کتاب ولوستو
دځن وهلو لاسو دوره یمه

خیر دے که هر څومره تاوان دے پکښې

ژوند دې بې له سره دې ړدمه پکښې

خو د خودئې شمله به جګه ساتم

لامې د حق ناره ایستلې نه ده

لامې ظالم له لاس مرور لے نه دے

مرګیه مه راځه له صبر وکړه

هغوی د ژوند په هر ډګر باندې

اسمان درو سره خبرې وکړې

ځکه د دنیا نه ئې کړه لاړه چاپیر

حسن پرست دے او په مینه کښې داخری حده پورې دتلو قائیل دے په ځینو خبرو کښې دبلا نا راست دے خو په حسن پرستئ اومینه کښې دچابکدستئ مثال نه لری پټ پناه پکښې نشته ښه ډاګیز دے هر څه مسئله چې وی خپله اراء او Comements بغیر دڅه احتیاط، مصلحت اوانعام نه په هغه ځائې ډیرے کړی انتها پسندی خو ب (چې کوشش کوی په شواروځ کښې اولس اتلس ګهنټې خو خواه نخوا اوکړی خو ډیوټۍ او ملګری ئې دغې ته چرته پریږدی). او غیر مستقل مزاجی ئې دژوند د ناکامئ غټ اسباب دی.

لاپرواهی او هیر ئې دحده زیات وی اکثر په پروګرامونو کښې ئې خپلې څپلئ، بوټان پریښی وی او دبل څپلئ ئې راوړی وی هغه هم یوه د خئ ښې او بله دګسې ښې دیو ځل خو یې تاسو په خدای یقین وکړئ چې دشپې په ټیکسی کښې راغلے وُ. او خپل موټر ئې دپردی دیرې مخې ته په وچ ډاك پریښے وُ. چې دیرې ته راورسیدو اوملګرو ترې تپوس وکړو نو وے ښه ما خو دے که ګاډے د دیرے مخې ته ولاړ وے نو بیا لاړو او ګاډے ئې راوستو.

څوك وائی کیمونیسټ دے څوك وائی سرکش دے څوك وایی نیشنلسټ دے چونکې زه ئې ډیر دنزدې نه پیژنم صرف ښه ساده پاده نیغ مسلمان دے په معاملاتو کښې خوئې هغه پخوانی مسلمانان هم شاته پریښی دی چې ډیوه راواخلے اوګرځی نو دهغه په ژوند کښې دچاسره دهوکه، فریب، دوه رنګی نشته او وائی هم چې دین اصل کښې دمعاملاتو نوم دے او عباداتو خو اللـه تعالی بخښې هم خو حقوق العباد نه بخښی. دټولو نه زیات ئې دکرکې دحده پورې هغه سړے بد شی چې پردی حق ته ئې بدې رانښکلې وی کمزوری پکښې ددې حده پورې شته چې جُمات ورته دپولیسو تهانه ښکاری یوځل

مې ترې تپوس وکړو چې اختر راروان دے جوړ ډېر خوشحاله ئې ماته ئې ووېل چې واقعي اختر ښه شے دے سړے پکښې دخوب اندوخر وکړی خو یوه خبره داغوړ رانزدې کړه دمونځ نه پکښې تنګ یم.بهرحال دالله او دهغه درسول(ص) مقبول(ص) دنظام په سچه په تولـه نړۍ کښې په صحیح توګه دراویستو ارماني دے. او واېې چې که ملیانو صاحبانو داقیموالصلواه سره سره په اتوزکواه باندې هم زور راوستو او په حقیقت کښې زکات ورکول شروع شول چې د اسلام روح دے نو صرف لس پنځلس کاله بعد به بیا دا دومره غریبت چې خلق دغریبت دلاسه خودکشیانې کوی او خپلې ګردې خرڅوی دابه بیانه وی او هرڅه به شل شل وی او غیر مسلمه به هم اسلام ته اوپسخیږی.

زړه مې غواړی چې داځومره لیکل مې پرې وکړه دومره پرې نور هم وکړم بلکې دا به هم کم وی ځکه چې دوردګ صیب خوبۍ دشمار نه بهر دی بلکې زما خوښ ملګرے هم دے خو ځکه دکاغذ نه ګتې راکاږم او قلم جیب ته کوم چې زه ترینه نن سبا خفه او ګیله من یم اوګیله مې ترې حقه ځکه ده چې دنورو دپاره ډېر ښه دے خو دځان دشمن دے.

هر وخت ئې په تلو کښې چال وی ځنګیدلے ګرځی او دهرسور نه په سور کښې ښکاری خو زه ورته ددې لیک په ذریعه وایم چې اشنا دلته قدمونه په خیال ږده. ځکه چې که شپه تیاره ده نو منې په شمار دی.

ډیره په مینه اودرناوی

عبدالقادر صیات

چیرمین مجلس عامله پښتو ادبی غورځنګ الریاض.

# خپلې خبرې

سړے ژوند او زړه ستړې مسافرې:
دکوثر صيب يو څو شعرونه:
زمونږ په سربانډې بادېږې خاورې:

دلــتـه بــاران کښــې را وريــږې خــاورې
زه پکښــې ځــائ دقـبر هـم نـه لــرم
خــو د وطــن مــې رايادېــږې خــاورې
کوثــره ډيــرو لــه راحــت ورکــوې
مونــږ راشــړې پــه مونــږ تنگېــږې خــاورې

ترڅو؟ ترڅو؟ اخر ترڅو؟ او ترکومه به مونږ په شته وطن کښې بې وطنه در په در او خاورې په سر دې پردې شگلن او کانې وطن کښې په دې پردی تاودينه خاوره چې دتندې نه پکښې خراړې سوزې د منزله ناخبره ددې زړه ستړې او نه ختميدونکی مسافرۍ دا درونډ او غټ پيټے په سر کړے وی. او داسې کرې کور اولے په لے به گرځو.
نمبر ۱:- مسافرې د اوسپنې نينې چيچل دی مسافرې دسپيرو خلقو کار دے مسافرې د دوزخ ټکړه ده چې داسې ده او يقيناً چې داسې به وی نو بيا ولې؟ اخر ولې؟ مونږ دغلامۍ دا زوړ او زنګ شوے زنځير په خپله خپلو غاړو ته اچولے دے بيا ولې مونږ داللہ تعالی (ج) دا قيمتی تحفه "ژوند" دمسافرۍ دبلا په کومی کښې ورکړيده بيا ولې ددې پيکه او بې رنګه ژوند دپخې ژرندې لاندې دل شو او دل کيږو؟
آيا زمونږ ددې نا اوزګارتيا او بوختونه زمونږ سره څه لږ وخت شته چې ددې سوالونو په جوابو او جوهاتو ځانونه پوهه کړو او

ددي ظلم او بربریت چې زمونږ سره په غیر محسوس انداز کښې کیږي مخنیوے وکړو، او په خپل وطن کښې د ابادیدو تابیا او کوشش وکړو وجوهات ډیر دي خو د اختصار په خاطر صرف دومره وایم چې دنړۍ په نورو هیوادونو کښې عموماً او زمونږ په وطن کښې خصوصاً ددولت دغیر منصفانه تقسیم او زمونږ په ذاتي ژوند کښې دحکمت عملۍ نشتوالے ئې غټې وجهې دي زما په خیال که چرې مونږ د سرمایه دارانه نظام کیپیټیلزم او جاګیردارانه نظام دفیوډالیزم خلاف یو اواز او یو موټے شو. او که چرې مونږ د خپل روښانه مستقبل په خاطر دښې نه د ښې حکمت عملۍ سوچ وکړو نو بیا لرې نه ده چې مونږ له هغه وطن چې زمونږ ورسره جذباتي لګاؤ دے هغه کلے چې زمونږ ورسره ډیر خواږه یادونه وابسته دي هغه خاوره چې مونږ پکښې خړپوسې کړیدي نو بیا دغه پښتنه خاوره دومره بې وفا نه ده چې مونږ له په خپله خوږه او توده غیږ کښې ځائ رانکړي دخپل ګور پلو دسیوري لاندې مو اوده نه کړي زمونږ اوده احساس راژوندے نه کړي زمونږ خوبیدلې سترګې دخوږ خوب په ځانګو کښې نه ځنګوي زمونږ زخمونو او دردونو له ټکور نه شي.

د روایاتو نه خلاف په خپله شاعرۍ بحث کول ځکه نه غواړم چې دا کار دلوستونکو وي او دا هم ډیره ممکنه ده چې په شاعرۍ کښې مې هغه خوند نه دے کومه چې د شاعرۍ خاصه ده دا امکان هم شته چې دردیف قافیې بحر او وزن په تله مې شاعري هم پوره نه وي ما صرف خپل احساسات او جذبات دقلم په ثوکه دالفاظو نه دامیل پئیلو کوشش کړیدے ښه او نا ښه ئې تاسو مه ګورئ او دستائینې ئې درنه زه متمنی نه یم او که چرې دومره وشي چې که زما سره زما په خیالاتو کښې یو لوستونکے هم شامل

شي اودا قامي مسئله زما سره په چغو چغو وژاړي. نو دا به زه خپله کاميابي او کامراني وګڼم حکه چې ما صرف دادب د خدمت په خاطر لکه د هغې بولۍ چې د يوسف په بولۍ. کښې ئې دشرکت په غرض يوه سوتلۍ. قدر ته راوړې وه چې خريدارو کښې شماره شم.
مايوسه کيږو به نه مايوسي کفر دے ډيره ممکنه ده چې که چيرې مونږ په دغو برنو سوالونو ځان پوهه کړو او دهغو په جوابونو سوچ وکړو نو مونږ ته به دخپل دې سوال جواب مِيلاؤ شي چې کلي ته به کله ځو؟
ځکه چې که شپه هر څومره ګوره درنه او بوګنونکې ولې نه وي خو سبا کيږي خامخا او که نه صرف دغه چې ريالونه به ګټم مالدار به شم او که سږکال نه وي نو کال له به په کلي اباد شم نو روره! په دې ارمان دې نيکه هم تللے ؤ هسې ګوره ګوره وايه خله به دې خوږيږي.
اجازت غواړم په دې ډاډ چې زما دخيالاتو سره څوك متفق وي او کنه خو ما سره به په کتاب په ورکړے شوې پته زما درهنمايۍ او زما په وينا دتنقيد لپاره رابطه ساتي زه به ورته ډير په ورون تندي په خيله چاڼ چاڼ جولۍ. کښې ځاۍ ورکوم
په ډيره مننه او احترام
عطاء محمد وردګ
ستر سکتريښتو ادبي غورځنګ رياض سعودي عرب

# مننه

زه دزړه دتلـه دخپل خوږ اودرونـد مشـر دصـدر پښتو ادبي غورځنګ الرياض سعودی عرب غلام حيدر حيدر صيب نه مننه کوم چې ددې کتاب په چا کښې ئې ډير په اخلاص او روڼ تندی زما سره نه صرف منده تړه ووهله بلکې دکتاب ترتيب اوزما په بار بار وينا ئې په کتاب سريزه ليکلو ته هم غاړه کيښوده په تيره تيره دښاغلی عبدالقادر صيادصيب چيرمين "غورځنګ" ښاغلی نعيم راهی‌صيب ( سابقه صدرغورځنګ" ښاغلی قائيل صيب ،ښاغلی خالد يوسفزی صيب سابقه صدر غورځنګ دملاکنډ تاترې اومورې هومره مننه چې دخپلو بوښتو او ناوزګارتيا نه ئې وخت وويستو اوپه کتاب ئې دزړه پورې ليکل وکړل. که چرې دهغوی کسانو ذکر ونه کړم چې زه ئې وخت په وخت دکتاب دچاپ لپاره پارولے يم نه دا به هم بې انصافی وی چې په هغې کښې ګل رحمان استاد دبابائې موسيقی ، غلام علی خان عرف متوا مکمل شاه معزم صيب، عبدالله صادق صيب فضل شاه فضل صيب غلام يونس راحت علی خان، فيصل لالا، اسلام نثاراسرار نورالله نيك محمدخان بابو زيدالحق حقيقت، ابراهيم صيب ، شهاب چکدروال، ببر شير نبيل،ارشد محمود، سيمين خان لال، خالد ، شال دا، شعيب خان،سبحان الدين خان، قاضی‌انعام الله، خورشيد عالم صابر ، ظاهرشاه، خپل ګران استاد تاج محمدخان صب، ښاغلے زرنوش شهاب صيب، کيسات بهائی، ميرزمين خان. علی احمد جانی، انور باچه، احمد شاه، دوست محمد ، يوسف استاد ، سيدظفر عليشاه باچه،شاه صيب،رازق صياد ، صابر حجازی، خپل خوږ او دروندماما محمد فياض خان، کشر ورور ډاکتر سهيل شهزاد ، وريرونه، قيصر وردګ، وقار وردګ، عمران وردګ، عباس وردګ اوصدام وردګ شامل دی.

په ډير درناوی
عطاء محمد وردګ

## "د مننې مننه"

د خپل ګران ملګري عطاء محمد وردګ صيب یوځهان مننه کوم چې د مننې په لیک کښې ئې زما نوم په دې خاطر یاد کړے دے چې حیدر هم زما په کتاب د نورې خوارۍ سره سره لیکنه هم کړې ده نو ماچې کله په کتاب نظر واچولو او په هغې باندې شوې لیکنې مې وتللې نو د لیکونو لړۍ ډیره درنه ښکاره شوه. بس په هم دغه وجه ما د لیکنې نه ډډه وکړه چې بیا به ځینې ملګری دا نیوکه کوی چې ددې نه خو تاسو د تبصرو کتاب جوړ کړے دے ځکه چې په نظم باندې د نثری لیکونو تله ډیره درنه ښکاریده. امید کوم چې وردګ صیب به په دې خاطر نه درنوی.

یوځلې بیا مننه

**غلام حیدر حیدر**

صدر پښتو ادبی غورزنګ، الریاض، سعودی عرب

شلم نومبر 2004ء

دا چاربیته ما دبابائے "چاربیته" ښاغلی اکوجان ماما په بار بار وینا ولیکله،وردګ

# چاربیته

ماتـــــه دکلـــــی مازیګـــــر یـــــاد شـــــو
مســـافری کښـــی مـــی دلـــبرياد شـــو
زه وایـــم یـــوه تـــه وی پـــه بلـــه ځـــو
زړګـــیه کلـــی تـــه بـــه کلـــه ځـــو؟

-۱-

ماتـــــه دکلـــــی وخـــــت یادیـــــږی یـــــاره
زړه مـــــی پـــــه تاپســـــی خوږیـــــږی یـــــاره
خفـــه پـــه دی یـــم جدائـــی جـــوړه شـــوه
بـــل داشـــنا بـــی پـــروائی جـــوړه شـــوه
هـــم دوطـــن راتـــه اختـــر یـــاد شـــو
ماتـــــه دکلـــــی مازیګـــــر یـــــاد شـــــو
اللـــه دی وکـــړی چـــی پـــه خـــپله ځـــو
زړګـــیه کلـــی تـــه بـــه کلـــه ځـــو؟

-۲-

ژړېږم ځکه چې وطن پاتې شو
په مجبورۍ دیار دیدن پاتې شو
یادومه وخت دوړوکوالي پکښې
د خپل اشنا به څنګه حال وي پکښې
شور مې دپیغلو په ګودر یاد شو
ماته دکلي مازیګر یاد شو
ځۍ چې ځو ځۍ ددې محفله ځو
زړګیه کلي ته به کله ځو؟

-۳-

په دې وطن کښې وفادار نشته
ځکه په دوی زما اعتبار نشته
ړندو ته ائین نیولے نه شو
ګنجوله سر ږومنځولے نه شو
راته خپل کور کلے خپل ور یادشو
ماته دکلي مازیګر یاد شو
نغرې مې خیژی دګوګله ځو
زړګیه کلي ته به کله ځو؟

نعرې وهم نعرې مې نـاورې
په ځان انبار دې کړلې خاورې
څنګه قلاره قلارې شوه پکښې
د هجران ژوند مې مجبورې شوه پکښې
د شپې مې خوب کښې ستا بشر ياد شو
ماته د کلي مازيګر ياد شو
غېږې به چاپير کړو ديو بله څو
زړګيه کلي ته به کله څو؟
مادې په خوب کښې وليدلې سترګې
بيا مې د قصده پټولې سترګې
دخپل زړګي سره په ضد راغے
ګوره ودرګ عطاء محمد راغے
په نيمکښو منخ مې څادر ياد شو
ماته د کلي مازيګر ياد شو
په موسکيدو وائی څمله څو
زړګيه کلي ته به کله څو؟

# غزل

زه دیار په سترګو ګښې جهان دمینې ګورمه
ما پګښې ورك کړے خپل ارمان دمینې ګورمه

څومره چې یوبل ته مونږ نزدې وو دومره لرې شو
لرې به بیلتانه ګښې امتحان دمینې ګورمه

خلك یار پسې ځي یار په ماپسې راغلے دے
زه ډیر خوش نصیب یم عجب شان دمینې ګورمه

ته زما دوړاندې لرې زما اشنا ته وګورمه
نن خو دې رقیبه زه ایمان دمینې ګورمه

هلته ګښې محمود ایاز او دلته ګښې وردګ ایاز
دواړه دیوې لارې یاران دمینې ګورمه

د الخزرج نه رياض ته په لاړ جنوري ۲۰۰۱

# غزل

جذبې سرې مينې مړې دي جانه څنګه درشم
زما دزړه ستنې کړې دي جانه څنګه درشم

په تا مين زړه مې هغه دے بدګمانه نۀ شې
روزګار زما نيولې ښپې دي جانه څنګه درشم

زړګے مې ډير غواړي چې داګهړي، دروالوځمه
پرديس مې پښوته زولنې دي جانه څنګه درشم

سر په زنګون ګته په خله ورد دسوچونو کوم
د زړه نسکورې مې کاسې دي جانه څنګه درشم

دهر وګړي په تندی دغم خولې پرتې دی

# طرحي غزل

ددښمن پښو کښې دقام خرڅو چې شملې پرتې دی
دهر وګړي په تندی دغم خولې پرتې دی

مونږ دخپل ذات دکوره اوس هم راوتلی نه یو
په هر یو لور دجهالت زمونږ قیصې پرتې دی

دمیر جعفر او میر صادق په شان غداران چې لرو
ځکه کارګل کښې دغازیانو جنازې پرتې دی

غله په لندن او امریکه کښې خپل سیلونه کوی
دروغو پښو کښې دحالاتو زولنې پرتې دی

وردګه بس کړه قلم مات کړه شونډې وګنډه نن
په دې وطن کښې پابندۍ چې ځائ په ځائ پرتې دی

داماندرې په خوا کښې د سوات په جنرېلي روډ دسمبر ۱۹۹۵

# غزل

داماشومان چې خرخوی ګلونه
ګلونه څنګه خرخوی ګلونه

ته خو رازق روزي رسان ئې ربه
ولې بیا رزق پسې مری ګلونه

چې فضاګانې معطرې نه کړی
ورک دې شي ټول دا کاغذي ګلونه

د سرو ګلونو قدر پاتې نه شو
مالیار په خپله ریژوي ګلونه

خلکه راوې نیسئ چې وې پېژنم
دا په مزار چې مې شیندي ګلونه

ځوانې مې ځار شه دهغو پیغلو نه
چې داوربل دپاسه ږدي ګلونه

ګل خو د مینې محبت نښه ده
ورک دې شي سترګو کښې چې شي ګلونه

ورد که مینه مینه مینه دې وي
خیر که اغیار هم بویوي ګلونه

# غزل

نن چې دورایه مې جانان وخندل
په ترارو شونډو مې ارمان وخندل
مخ دې شه تور رقیبه ستا دلاسه
مست شو غمونو دهجران وخندل
غنچې مسکۍ وې دسپرلی غیږه کښې
باغ لاسمسور وو چې خزان وخندل
چې داسمان لمنې سرې لمبې شوې
بیا دچا زړه وسو طوفان وخندل
په لامکان کښې چې غوغا جوړه شوه
جوړ چاپاګل په بیابان وخندل
زما دغم او فکر ډك دالان کښې
سوچ مې موسکے شو ماه تابان وخندل
چې دجانان جملې شان ئې ولید
زما ریښې ریښې ګریوان وخندل
وعظ ورد ك ته کړې دا نه وینې څه
دنیا خندیږی درست جهان وخندل

چکدره اګست ۱۹۸۶

# مزاحیه غزل

زما یاره ته زما ئې پیپسی کولا
زه هم یمه ستا لپاره کوکاکولا
دګنجي پن هیڅ علاج په دنیا نشته
هسې مه اخله دد کان نه کالاکولا
هم ګرمی هم پشکال کښې دې په سروی
کوهستانیه خدائ دې خلاص کړه له پکوله
اوازونه کړې دخیر نورخوته شرئې
سره ډوب شی ډس ملنګه اوکچکوله
یه رقیبه هسې بقه بقه مه کړه
یه سپیره لړه دا خله دې کړه راټوله
زه چې کله په چوتې کلې ته راشم
دا ستا څنګ ته به درځمه یو څوشپوله
ددنیا قامونه وختل سپوږمۍ ته
یه پښتو نه ته ونه وتې دشپوله
اے وردګه که نظر دې دے کمزورے
چشمې واخله ته دیار سترګو کتوله

# غزل

زما دعقل په کاسه کښې نه ځایږی لالے
بیا هم د زړه په وران کنډر کښې مې اوسیږی لالے

دنمر سپوږمۍ دا رڼا ګانې به څنګ تتې نه وی
چې دتورتم په تورو شپو کښې سبا کیږی لالے

څنګه به نه ښیرازه کیږی دا لتاړې دشتې
دپشکال د بارانه پشان وریږی لالے

لمبه لمبه شم درقیب خوا کښې چې ئې وې وینمه
په زړه دصبر تیږه کیږدم خفه کیږی لالے

زړګے مې ډیر غواړی چې نن ئې دا قیصه ختمه کړم
مګر پتهیږی پشا کیږی او شرمیږی لالے

چې په خطا کښې تقاضا ترې دبوسې وکړمه
وردګه سور شی له غصې نه او ګوابنیږی لالے

# غزل

زه خپل غربت کـه مـې جانـان وسـتايم
کـه مـې ايـرې ارمـان وسـتايم
ددې واوريـن وطـن واوريـن بادونـه
کـه مـې خولـې خولـې ګـريوان وسـتايم
داستحصـال پـه ژړنـده دل پښـتانه
کـه وران ويجـاړ افغانسـتان وسـتايم
سـپرلے سـتايل دروغـو زړونـو کـار دے
پـرېږده چـې زه سـپيره خـزان وسـتايم
کـه سـتايم سـتايم اخر څـو بـه ئـې سـتايم
بـس خـو چـې نـن غـم دهجـران وسـتايم
دا زه وردګ کـته پـه خلـه چـې ناسـت يـم
سـتا خوشـحالي کـه خـپل خفګـان وسـتايم

# غزل

مینه مره جذبې سرې دی ددرتلو پاتې یم
دزړه مې ماتې حوصلې دی د درتلو پاتې یم
خیال کښې مې اوسې خو تصویر دې اوس څه تت غوندې شو
یاد مجبورو سره ترلے څه لت پت غوندې شو
اوس دهمت مې نښتې پښې دی د درتلو پاتې یم

هغه دخوند ناز او اداء او دمستئ خبرې
ستا پیغلتوب حسن نشه او دځوانئ خبرې
زما دښې ماضئ قیصې دی ددرتلو پاتې یم

زه مسیحا کړم ساقي پرې هیروم غمونه
مدهوشه جام کښې ئې دسترګو ډوبوم غمونه
پیالئ نیولې مې دوه درې دی د درتلو پاتې یم

عقل باغي دے د وردګ نه سرکشئ ئې کړې
زړګے ئې هم دے بې اختیاره مئ نوشئ ئې کړې
وائئ زما نه څه ګیلې دی د درتلو پاتې یم
دزړه مې ماتې حوصلې دی د درتلو پاتې یم

یو شعر:

دکوڅې ماشومان تول به ما په جنګ کړل
په دې خیال چې دروازه کښې رانبکاره شې

# غزل

خوشحالي لاړې تلوسې پاتې شوې
راسره تشې وسوسې پاتې شوې
په نرمو شونډو ئې نرۍ خبرې
دزړه نسکورې مې کاسې پاتې شوې
قهقهې شوې په اسويلو بدلې
دياري دغه ميراثې پاتې شوې
تا وئيل تا نه به جدا نه شمه
دغه فرضي شانتې قيصې پاتې شوې
د پرديسۍ په بلا واوريدمه
څکه زما نه ستا کوځې پاتې شوې
په دې نيمګړې ژوند باور نشته دے
راسره خوا کښې که څو شپې پاتې شوې
ما ددنيا له خوږو لاس واخستو
چې ستا دشونډو پتاسې پاتې شوې
ورد که زه او يار مې يوځائ شولو
ډيرې خبرې راپسې پاتې شوې

# غزل

ته مې جام، ته مې جان ته جانان ئې

ته مې دُر ته ګوهر ته مرجان ئې

ته مې زړه ته نزدې، ته مې ځان ئې

ته مې نائيك، ته كفيل، ته مې خان ئې

ته مې ژوند ته مې ژواك ته ګذران ئې

ته مې فكر ته مې غم ته دوران ئې

ته مې فن ته كتاب ته ګردان ئې

ته مې سكول ته كالج ته پوهان ئې

ته مې سوچ ته مې خيال ته ګمان ئې

ته ګرمی ته یخنی ته خزان ئې

ته مالك ته مولا ته رحمان ئې

ته خالق ته رازق ته سبحان ئې

لنده دا اے عطاء اے ورد ګه

ته مې دین ته دنیا ته ایمان ئې

# طرحي غزل

پښتو پښتونولي ده څه پښتو کول پکار دي
يو قام يو وروروولي ده څه پښتو کول پکار دي

بابا يو ځای کاکا بل ځای لاله هم بيل روان دے
يو پړاؤ په يو منزل په يو لاړ تلل پکار دي

ده په کار چې ددې سيمې هر وګړے قام پرست وي
او که نه وي په لوړو ددې قام ايستل پکار دي

دنړۍ واړه قامونه راويښ شويدي بيدار شو
پاڅي نۀ په اوازنو داپښتون سکونډل پکار دي

نن وردګ په چاپيرچل کښې سباوون اومينه وينې
دا چې چغه دنفرت کړي دا په توپ ويشتل پکار دي

# غزل

دا نـه چـې درقيـب پـه وسـيله رانـه جـدا شـو
اشـنا مـې دتقديـر پـه فيصـله رانـه جـدا شـو

دا داسـې جدائـى پـه جدايـى نـه ده حسـابه
کـه لاړو دروزګـار پـه سلسـله رانـه جـدا شـو

خـوارږه بـه ددنـيا راتـه اوس ولـې تـراخه نـه وى
دژونـد پـه يـو باريکـه مـرحله رانـه جـدا شـو

هرڅومـره کـه وى لـرې يـو خفـه وربـاندې نـه يـم
وردګـه! دپـرديس پـه دې مـيله رانـه جـدا شـو

# غزل

خدای خبر کوم ځای به ئې چرته به ګرځیږې اشنا

نن خو مې ډیر ډیر په زړګی باندې وریږې اشنا

دوفا ډکه یاره زه دریږې ډیر خفه یم

پوهه یم په ماپسې به هم ډیر خفه کیږې اشنا

راته نزدې دے ما دې نوم دزړه په سر لیکلے

هرڅوکه لرې وطنونو کښې اوسیږې اشنا

زما دعا ده دښائست درڼا دې یو په دوه شه

لکه سپوږمۍ بره اسمان کښې وځلیږې اشنا

زما وردګه زه چې هر ځای یمه ستا به یمه

زه نه بدلیږم خو ته هم به نه بدلیږې اشنا

# غزل

که هرطرف رانه چاپیر هزار ښکلی وی
ښکلیه ستا د ښکلی مخه نه دې ځار ښکلی وی
په ساده حسن کښې ښائسته ښکارې سنګار ونکړې
درته حیران به هر طرف ته د بازار ښکلی وی
دا زه چې هره لاره څارمه دا ستا په خاطر
ویمه که تلی ستا په رنګه په دې لار ښکلی وی
ښکلی به هر طرف ته ډیر وی دا به ومنمه
نه کړم ګمان که ستا په رنګه وفا دار ښکلی وی
منم وردګه ښکلی هر ځائ سترګې نیغې ساتی
وعده چې ماته کړی په دې وخت کښې ناچار ښکلی وی

دلاهور نه کلی ته دراتلو په موقع ۲۲/۲/۱۹۸۷

اردو

# وطن

وطن کے دل اور دلکش نظارے

حسین ھے کتنے پرکشش نظارے

اغیار کیلئے تو خس انکھ ہوسی

مجھے کو لگ رہی ھین پیارے پیارے

اسکی خوشی پہ سب خوش ہوتے ھین

اس کے نقصان پہ دھڑکتے ھے سارے

سرمیاہ دار کو بیچنا چاھتے ھین

بچانا چاھتے ھین غریب بچارے

میرے تو سب دل کے تکڑے ھین

دشت، بازار، دریا کے کنارے

میرے وردک کا بس یہی دعا ھے

خدا ائی دن وطن کو نکھارے

# غزل

چې دګوړې په چکې شوه نو ونه شوه
یارانه چې دکوګې شوه نو ونه شوه

که عزت غواړې ددیر په پلو راشه
میلمستیا چې دپلې شو نو ونه شوه

درحمان غشې اوس ځکه خطا کیږی
زما نه چې دګولې شوه نو ونه شوه

بوډاګان خو صرف مور او پلار پکار دی
معشوقه چې دې بوډۍ شوه نو ونه شوه

تندر په تلاش او خره ئې درامو ړې یوړه
داخبره پخوانۍ شوه نو ونه شوه

زه وردګ خو ئې لیکم دزړه په وینو
شاعری چې دسیالۍ شوه نو ونه شوه

# قطعات

سیاست باندې بنده کښې شعور راشي
عبادت کښې هم دزړه سترګې بینا شی
پښتو به ده غیرت به دے ناموس به دے
ولې علم سره تهول صفات پیدا شی

راشه جانانه په سرو تکړو به وخت تیروؤ
غم به کړو شاته خوشحالو باندې به وخت تیروؤ
چې بهر نه وی نو هغوئ ولې دلوږې مړه شوه
ریال که نه وی په روپو باندې به وخت تیروؤ

یو شعر

اخر وخت شو ځان ځانې شوه مینه لاړه طوفانی شوه
اول للمه په وله وه، اوس شولګره بارانی شوه

# نظم

نوټ: دا نظم دباچا خان د کلیزې په موقع په ۱۹۹۹ کښې د ریاض سعودی عرب په خاوره کښې واورولے شویدے. اروابناد فخر افغان خان عبدالغفار خان عرف باچا خان ته دعقیدت پیرزوینې.

سلام سلام اے باچا خانه ستا عظمت ته سلام
سلام سلام فخر افغانه ستا همت ته سلام
خپله عظیم وې ځکه مونږ ته دې عظمت راکړو
دمینې درس او پیغام دې دالفت راکړو
رڼا دې راکړه تاشعور دسیاست راکړو
اسلام پښتو دې راکړه تا انسانیت راکړو
ستا ژور فکر ستا نظر ستا بصیرت ته سلام
سلام سلام فخر افغانه ستا عظمت ته سلام
پښتۍ دې ماتې کړې پښتو کښې اے پښتونه بابا
دقام په غم باندې غمژن دقام ژوندونه بابا
د جهالت تیارې دې لرکړې پوهنتونه بابا
تل به کرمه ستا لوړ فکر ګلونه بابا
ستا تورې ننګ وفا ښیګړې او غیرت ته سلام
سلام سلام فخر افغانه ستا عظمت ته سلام
په ژوند دې هم دیو افغان دپت پالنه کړې
په مرګ دې هم دیو افغان ځرګندونه کړې
تا همیشه دامن درس او پاسدار نه کړې
تا تل دجنګ نه خندہ کړې او غندنه کړې
په دواړه لاسه د وردګ ستا دې جرات ته سلام
سلام سلام فخر افغانه ستا عظمت ته سلام.

افغانستان ته دامريکې په راتلو

# نظم

چې په غوړونو ئې ويشته وو هغه پښتون نشته
ګيدړو ځکه ګډې ماتې کړې چې شپون نشته

-۱-

په مخ مې اوښکې ځی رودونه چې افغان وينمه
احساس مې وريت شی چې پښتون ځيرې ګريوان وينمه
زړګے مې وچوی چې سر ټيټې پاکستان وينمه
ايره ايره شم چې په اور کښې مسلمان وينمه
دجهالت تياري خورې دی پوهنتون نشته
ګيدړو ځکه ګډې ماتې کړې چې شپون نشته
اے دخالد بابا بچيه تا خپل ځان خرڅ کړو
تا خپل غيرت تا خپل تاريخ تا خپل ايمان خرڅ کړو
تا امير کروړ تا ميرويس خان تا ايمل خان خرڅ کړو
ځکه وطن کښې مينه نشته دے قانون نشته
ګيدړو ځکه ګډې ماتې کړې چې شپون نشته

اے د خوشحال بچیه ستا هغه عظمت څه شو
دابدالی بچیه ستا هغه وحدت څه شو
اے د شیرشاه بچیه ستا شان وشوکت څه شو
د قام په مینه مستی څه شوه محبت څه شو
وینې بهیږی په هر خوا خو یو روغتون نشته
ګیدړو ځکه ګډې ماتې کړې چې شپون نشته

-۳-

کوم خوا! چې ګورمه پښتون په مصیبت کښې ګیر دے
هر یو وګړے دحالاتو په قیامت کښې ګیر دے
په چیغو چیغو ژاړی هر کس په غربت کښې ګیر دے
قامی سوچ نشته دے پښتون انائیت کښې ګیر دے
دورډک ذهن ته خو ځکه نن سکون نشته
ګیدړو ځکه ګډې ماتې کړی چې شپون نشته

یوشعر:

که څوك تپوس کوی زما دژوندون
دڅنډ وهلو لاسو دوره یمه

# هائیکو

بچې مې خير دے کـه تعلـيم نـه کـوی
خـو کلاشـنکوف بـه خامخـا ګـرځوم
يمـه پښـتون دپـلار بـدل بـه اخلـم

==================

پــه زور اوشــور نــه کــيږی
راوړه دلـــيل مخـــې لـه
سـر بـه دې ښـو کښـې کـيږدم

==================

يـو بـه دې پورتـه کـړی اسـمان طـرف تـه
بـل بـه دې ښکـته کـړی دزمکـې تـل تـه
يـوه دچـرس بـل دشـرابو نشـه

خوار ه خوار ه راته راګوري څله
زه دومره زر وطن ته چرته ځمه
ستا دبابا په کفالت کښې یمه!

==================

ته چې دمیاشت دړې دانې اخلې
داشوه دیارې دې دپنځوو مونځونو
ملا داته به خپل مونځ کله کوي!

==================

زکات خیرات دقربانۍ څرمنې
دم اوتعویز هم دې اسخات دمړی
ملا همیش تر خز خپل ځان ته وهی!

زه کله په دې سوچ کومه
څومره کم عقل دی لاهغه خلق
چې په پیسو خلقو نه زورنه اخلی

===============

چې د کم عقل غوږ پرې نه ګرېږی
هوښیار سړی ته ئې ضرورت نشته دے
نصیحت ورایه بیا چاته کوې!

===============

څوک ئې په زړه کښې ګرځی
څوک ئې په سر کښینوی
دکم وئیونکی سړی قدر ګوره!

دلــــته مــــارانو خـــــپل بچـــــی وخـــوړل
ددې وطـــــنه چـــرته تلـــل پـــه کـــار دی
هســـې نـــه اوبن دپاســـه ســـپی مـــو وخـــوری

==================

فـــرق دے زمـــا او ســـتا د زمکـــې اســـمان
زه امـــــن غـــــوارم محبـــــت شـــــیندمه
او تـــــه جګـــــړې پســـــې پـــیاز ګـــرځوې

==================

چـــې کلـــه تـــیرې شـــی اوبـــه دورخـــه
پـــه خـــپلو کـــړو بـــیا پښـــیمانه یومونـــږ
دکـــار نـــه مخکښـــې ســـوچ کـــول پکـــار دی

خبرې دې سرې کول
د کم عقلانو کار دے
داهوښیارانو وئیلي

==================

خُله دې یوه ده او غوږونه دوه دي
نو دوه به اورې او یوه به وائی
په دې منطق ځان پوهول پکار دي

==================

په زور قائیل به نه شم
که وې دلیل در سره
در ته مائیل به شمه

چې دې په ورکړه باندې جيب خالي شي
زړه به دې شي دخوشحاليو نه ډك
جنت به وګڼې په هغه جهان

================

كه محبت كوې ته
نو اعتماد به كوې
دواړه لازم ملزوم دی

================

خپلو غلطيو نه به
سبق خلې ضرور
زده كيږی عقل په ټكرو باندې

امیر په بره روان
غریب په لاندې درومې
ددې انجام به څه وي

==================

که د ناکام په لفظ مو ځان پوهه کړو
او د عمل جامه وروامو غوسته
واړه او غټ جنګونه تول به نه وي

==================

چې په طواف کښې کله پریوتلو
یو بابا داسې وویل پیره بابا
په نیك نظر راته راورسیږې

دمــــوره یـــو شـــانې لغــــړ پـــیدا دی
دهــــر یوقـــام هـــر یومذهـــب انســـانان
نــو غــټ او کــچ پــه کښــې     له کومــې راغلــه؟

==================

ټولــې نــړۍ کښــې بــه هــیڅ جــنګ نــه وی
کــــه چـــا عمـــل وکـــړو پـــه دې خـــبره
چـــې بـــه اوږه ښکـــته کـــوو یـــو بـــل تـــه

==================

دښوـــــله مخــــه خـــو دنـــیا پـــیداده
ورك شـــه دبـــدو خلقـــو بـــد مخونـــه
ددې دنـــیا تـــه مـــې زړګـــې تـــور کـــړی

ورکړه راپورې او دابلب کړه مړ

خواته مې کښېنه چې دروئې ښائم درته

دخپلې راډو پړقيدونکی غمې

================

په دې دنيا کښې به خوشحاله ګرځی

هم اخرت کښې به وی هسکه غړې

چاچې په نفس باندې قابو راوسته

================

دانسانی حقونو چيغې وهی

هم په انسان باندې بمونه وری

اور دې په دې انسانيت پورې شی

چې دکویت له غمه خوب نه ورځی

علمبردار دانسانی حقوقو

په فلسطین ولې خاموشه ناست دی

==================

من وسلوی نشته بنګلې مې نشته

چې زه پرې ستاسو میلمستیا وکړمه

سره دنیاز به درته پیاز میلاو شی

==================

سبا سحر وختی چې څوك ورځی

کتاب به اخلی او دستخط به کوی

داڅه دمیا کلی خیرات خو نه دے

چې تیل ارزان او به دي ګراني پکښې
د انسانیت په کښې درك نه لګي
دغه سعودي عربستان دے خلقه

===============

ږیره مې تو له تکه سپینه شوله
ځوانی مې خاورې شوه پردی وطن کښې
د بنګړو شړنګ مې هڅو وانه وریدو

===============

په ارمانونو واوړی
تش په خوبونو تیر شی
دمسافرو اختر

ددې واورين وطن سره سپين پښتانه

ووايه دلته به وخت څنګه تير کړی

دلته خو تندې نه خاړې سوزی

==================

د حاکم وخت سندرې

او د الفاظو هنير پير

د پتې تهي وی خبرونه

==================

قتل و غارت به نه وی

بيا دغيرت په نامه

که مونږ لبرل شولو!

لا مې د حق نعره ویستلې نه ده

لا مې ظالم له لاس مرورلې نه ده

مرګیه مه راځه لږ صبر وکړه

=================

تاته به هر څه ښکارم هیڅ نه یمه

که دې زما دژوند کتاب ولوستو

د ځنې وهلو لاسو دوړه یمه

=================

څوک وائی څه پرې وکړو

څوک وائی څه به کوو

دالله دې تقسیم ته ګوره کنه

لا به یو کیږو
دا د بابا قبول دے
ګنې ورکیږو

==================

نهٔ منم زه د بې عمله علم
نه دنیا دار زه متقی منمه
دربار کار نه زهٔ لوفر خوښوم



==================

چې مې ځوانی وه نو زړګے مې مست وۀ
پاس په کوټه به مې ګواتها کوله
اوس کټ کښې ناست ځان نه مچان شړمه

چې دوروازه د بل په ګټه وولې
دا ضروري دا یقیني وګڼه
ستا دوروازه به بل په لته وهي

==================

چې دوه ور واچوئ خلورو دانګی
د پښتنو اتفاق
خه د چیندخو تول دے

==================

دغه د سر کانے دے
معلومه نه ده چې به کله رغړي
د سعودي عرب نوکري

نور سرود مه غروۍ
هغه متیزه ناوې
دوبۍ ته وتښتیده

===============

هغوۍ دژوند په هر اړخ باندې
اسمان درو سره خبرې وکړې
ځکه ئې لاره کړه دنیا نه چاپیر

===============

په هر کال دوه ترې خامخا راوړمه
دخپل خاوند نه مې بیا هم ګیله ده
ما سره مینه په رښتیا نه کوی

زما وی ښځې خوښې
د ښځو ساګ خوښ وی
ځکه ئې خورم په مینه

==================

چې ئې له کوره شړی
بهر شال نه شي کیدے
اول په کور کښې خپل مقام جوړ که

==================

دخپل مقصد نه به دې لرې چرته
په تور تمونو اوتیارو ګرځوی
نشې ته نوم دسرور مه ورکوه

کامیابي ستا هر یو قدم ښکل کړو
نشي دغو خلقو کار د ځگلـه
څوك چي دژوند منډه کښي پاتي راشي

==================

ما په هوا کښي محلونه جوړ کړل
هم مي پاخه کړل پلاونه خیالي
چي مي د ډك سگریټ نه دم واخستو

==================

هم ئي خبري هم ئي تلل ستائیلش شي
بیا گوري نورو ته په سپکه سترگه
غریب سړے چي دپیسي خاوند شي

خیر که هر څومره خساره ده پکښې
ژوند دې بېلمه سرې ږدمه پکښې
خود خودي شمله به هسکه ساتم

---

ته هم عزت او خور ومور لرې
دلته په خیال ږده قدمونه اشنا
پردو چاودونو کښې کتل مه کوه

---

لاس کړئ اوچت دقبلیدو وخت دے
دربه کړی او غواړئ د زړه له تله
چې زنکدن مو په وطن نصیب شی

په سپین دیوال داتورې توری غنې

زېره ئې هم لا په لاړو سخا سخاوی

دنسواری به دره څه ووایم

===============

نسوار دخیشکو دی په بره زور کړی

پس دمرګی به دې بیا قبروهی

دبجاجوړی سړی نه قرض مه اخله

===============

دچاچې زور دے دهغوئ شور دے

حقې ته حقه وئیل ګران کار دے

په ښه او بد کښې تمیز پاتې نه شو

دپښتنو دتــــراخه خويــــه ځــــار شــم
چــې پــه نســوارو کښــې چونــه زياتــه شــوه
غــلام اســحق خــان اســمبلي ماتــه کــړه

================

افغانســتان ئــې لوټــې لوټــې کړلــو
اوس دعــراق بــيا دايــران نمــبر دے
د زورور اوبــه پــه بــره خــيژي

================

تــه پــه دنــيا کښــې هســکه شــمله
دنګــه غــړې ګــرځه پــه هــر لــور چــې ځــې
خــو ســر بــه ښکــته کــړې ربــاط چــې راشــې

ويـــزې لـــپاره دې پتهـــے ګانــــه کړلـــو
د پاکســـتان نـــه ســـعودی تـــه راغلـــې
تاتـــه جـــوړ هـــم دچـــا بنـــيرې قـــبول شـــوې

===

هـــم بـــه ګتـــې هـــم بـــه پخـــے پـــه خـــپله
ادې دې نشـــته چـــې دې درد ټکـــور کـــړی
پـــردیس داوســـپنې نيـــنې چـــيچل دی

===

دهديـــرې پـــه لـــور زمـــا جـــنازه
ســـحر ګاونـــډ نـــه مـــې ډولـــی تلـــې ده
رښتـــيا ده غـــم او بنـــادی رور خـــور دی

ګل د ډنډره شوکول ښه نه دی
بوټي ئې لهورایه کړه که ډیر دې خوښ وی
هوس ته نوم دمیني مه ورکوه

==================

ما نه دې واوریده خوره دې کړله
ماته مې هم دازړګې داسې وائی
چې دا پرتوګ دې په چنار واچوم

==================

دوړې همیش ددوی په سر بادیږی
هم وریادیږی په خوبونو کښې خپل
مسافری څه دسپیرو کار دے

یــــاد مــــي شـــــو تــــــير وخـــــتونه
چـــي دګـــودر پـــــه خـــوا کښـــــي
مــــا بـــــه چيــــنچنې ويشـــــتي

===============

نـــه ددنـــيا شـــو نـــه ددیــن پـــاتي شــو
ځوانـــی مـــو خـــا وري شـــوي پـردی وطـن کښـــي
هســــــي داوښ دپاســـــــه ســــپو وخـــــوړو

===============

چـــي داســـلام پـــه نــوم دولـــت غونـډوی
ددوی نـــــه زه هغـــــوی بهــــــتر ګڼمـــــه
چـــي پـــه بـــاجو بچـــو          له رزق ګټمـــی

دچا چې لاس دحده زيات کولاۋ وي
دخپل څادر سره پښې نه غزوي
هغه به هر وخت قرضونه غواړي

================

ورور دے د سلو پلار د زرو نوټ دے
نورې رشتې ټول پچاسے وګڼه
جنت فقط د مور د پښو لاندې دے

================

مرې پخلا شه که نه
يوې کوکې نه راته
جوړوې خله د کشمير مسئله

ځوانۍ مو خاورې کړې پردي وطن کښې
يه مسافرو يو تپوس کومه
وواېي کلي ته به کله ځومونږ

---

نه کړم دچرسو زه ستائنه نه کړم
ولې غندنه ئې هم کولے نه شم
زما دردونو له تکور ورکوي

---

داچې جامو کښې نه ښائيږې اشنا
دا چې اوچت اوچت دانګونه وهې
چرګه ښکاريږې جوړ لسم دې پاس کړو

دا چې ویښته مې لکه سپین دلتې

او دا په مخ چې مې کوغالي ښکاري

د پردیسۍ ګنې بوډا خو نه یم

================

په دې شګلن کاریز وطن کښې

مونږه پراته یو دبچت لپاره

څکه څادر سره به پښې غزوو!

================

چې دمحلوقه دې دنیا ډکه ده

ولې دا زه په کښې تنها ګرځمه

ستا په دې ښکلو کښې یو ښکلے غوارم

د نفرتونو کور کښېږي

محبتونه شیندی

د عاشقانو بد به څنګه وایو

===============

چې د سندرو نه ئې مینه څاڅي

وی په غزلو کښې ئې امن امن

د شاعرانو له افکاره ځار شم

===============

که محبت کوې ته

نو اعتماد به کوې

خو په وردګ باندې نه

# څلور شعرونه

يو قيصه وي د ارمان د ګل غنچه وي مينه
خو چې وفا کښې وي رانغښتې او سوچه وي مينه

مينه معراج دے، کوه طور دے او قيصه د نمرود
جوړه خليل ته د سرو ګلونو نه باغچه وي مينه

مينه په عرش کرسی قدم ږدی چې پخه شی کله
منزل ته کله نه رسيږی چې کچه وي مينه

ورډګه ډيرو ته شی تخت د باچاهی پرې کښينی
ډير ئې سوری کړل ډيرو ډيرو ته برچه وي مينه

# غزل

شاړه په بیابان کله په غر دې ګرځوي
مینه عجیبه ده در په در دې ګرځوي

ما غوندې به ډیر دې بې ګناه وي پرې ویشتلي
سترګو د جانان چې په هنر دې ګرځوي

دغې یوٴ ادا د ښکلو ډیر یم حیران کړے
کله دې رټي کله په سر دې ګرځوي

یه د ښو غشو د جانان څه مې ګناه ده
خاص زما په زړه لکه نشتر دې ګرځوي

یه ورد که خپله غریبي درته بلا ده
کله په وطن کله په غر دې ګرځوي



عطاء محمد وردگ ځلمے شاعر دے او زما د علاقې دے، د تورو
أوبو نه پورې د روزګار په بوختو کښې ډوب دے، په دې کتاب کښې به تاسو ته
نظم او نثر دواړه مخې ته درځې. فنې او املا ئې تېروتنې به هم لولئ، خو د
دغې دننه تاسو د ښاغلی وردګ پښتون ضمیر او اخلاص ته ګورئ
د قافیو لاندې باندې او د بحرونو کمی کوزی لرې کولو او د کتاب د پوره
لوستلو موقع ما ته نۀ ده راکړے شوې، خو د ښاغلی حېدر ډېرې تندی کتاب
ستاسو لاسونو ته درسوؤ.
د ښاغلی "وردګ" نامه به په ادب کښې بیخی نوې وی، خو د عربو په زمکه د
هغۀ د خپلې ژبې او ادب د خدماتو سلسله د یوې مودې راهسې ډېره په
کامیابی روانه ده. الله (ج) دې ورله د قام د شملې هسکولو او د ژبې د خدمت
کولو نور توان ورکړی.

پروفیسر اباسین یوسفزے
پښتو ډیپارټمنټ پېښور
۲، اکتوبر ۲۰۰۴ء